

# دلوونو فصل

(په شپېتمو کلونو کې د پښتو شعر څو بېلګې)

راټولوونکی

محمد اسمعیل یون

۱۳۸۷ل

# د لوونو فصل

(په شپېتمو کلونو کې د پښتو شعر څو بېلګې)

راټولوونکی

محمد اسمعیل یون

# بسم الله الرحمن الرحیم

## کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | دلوونو فصل |
| راټولوونکی: | محمد اسمعیل یون |
| خپرندوی: | یون کلتوري یون |
| چاپشمېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| لومړی چاپ: | ۱۳۶۹ل کال |
| دویم چاپ: | ۱۳۸۷ل کال |
| د راټولوونکي پرله پسې نومره: | (۳) |
| د خپرندوی پرله پسې نومره: | (۳) |
| کمپوزر: | ضیاالرحمن ضیا |

# ډالۍ

((زلمي هېوادمل)) ته چې پر دې دنيا يې د خپل زلميتوب خوږې شېبې د پښتو د خدمت لپاره پر منډو رامنډو، دګرد جنو پاڼو پر لټولو او پلټولو، د ناڅرګندو پر څرګندولو، د چاپخونو د ماشينونو پر ګړبهار، د بې وقوفانو د سپېرو او ترخو خبرو پر اورېدلو، پر پليو مزلونو، د نوي ادبي کښښت پر کرلو د ځوانو هيلو پر هڅولو، په ويښه د شپو پر سبا کولو، د دې رنګينې دنيا د عيش او عشرت پر هېرولو، په بې درده زړونو کې د احساس پر ټوکولو، د لويانو د حق پر اداکولو او د پښتو د پيکي ګل پر تل ښېرازه ساتلو تېرې کړې او په بله دنيا خو به يې بې له شکه د دوزخ شنې او سرې لمبې له ژونده تاوې وي ځکه چې ده پښتو ته خدمت کړی او پښتو خو د ((دوزخ)) ژبه ده.

په درنښت

د قربانۍ پر همداسې لارې مين

يو بل ((يون))

# نیولیک

# د دويم چاپ سريزه

پر ۱۳۶۹ل کال زه د کابل پوهنتون د ژبو او ادبياتو پوهنځي د دريېم ټولګي محصل وم. دا وخت مې په ((شخصي لګښت د کتاب چاپ)) يو کوښښ او يو خوځون پيل کړی و او هڅه مې کوله يو شمېر هغه افغانان، چې له اقتصادي پلوه يې روزګار ښه و ، دې ته وهڅوم چې په خپل لګښت علمي او هنري کتابونه چاپ کړي او په دې ډول د هېواد د فرهنګ په وده کې برخه واخلي. زموږ لومړۍ هڅه په دې برخه کې بريالۍ شوه او د خپل ټولګيوال (پښتون بهرامزي) په مالي لګښت مې ((نيمګړي ارمانونه)) اثر چاپ کړ. دا کار ددې سبب شو ، زما نور ټولګيوال چې تر پښتون بهرامزي يې اقتصاد پياوړی و ،

دې ته وهڅېږي، چې هغوی هم د اثارو د چاپ او نور فرهنګي چارو لپاره پانګه بېله کړي. په دې کې زما يو بل ټولګيوال (حاجي خان محمد ) چې يوې ډېرې درنې پښتنې کورنۍ ته منسوب و، د يو بل اثر د چاپ ژمنه وکړه، دا اثر ((د لوونو فصل)) و، چې ما د همدې **۱۳۶۹ل** کال په بهير کې ترتيب کړی و. دا اثر اصلاً په شپېتمو کلونو کې د پښتو د څو نوموتو




شاعرانو د کلام ځيني بېلګې دي، يا غورچاڼ دی چې اکثره د همدې لسيزې د حالاتو انځورنه کوي او هغه وخت زما هدف او پلان دا و چې موږ بايد د هرې لسيزې په پای کې د خپل ادب د بېلابېلو صنفونو منتخبات ترتيب کړو او دې سره به موږ ته په ډاګه شي، چې موږ له يوې لسيزې بلې ته په فرهنګي ډګر کې

څو مره پر مختګ کوو. د شعرونو دا غورچاڼ مې د همدې مقصد لپاره ترتیب کړی و، غوښتل مې د لنډو کیسو یو منتخب هم ترتیب کړم، خو بریالی نه شوم. دې اثر ته مې هغه وخت ځکه د ((لوونو فصل)) نوم ورکړ، چې پر هغه وخت په افغانستان کې د سرونو لوګه و او موږ هیله لرله، چې د انساني سرونو د لو دا لړۍ باید بلې لسیزې ته وانه وړي او زړه کې مې ګرځېدله چې که بله لسیزه کې زموږ هېواد ارام و او ما د بلې لسیزې د شعرونو غورچاڼ چاپوه، نو بیا به پرې د ((ګلونو فصل)) نوم کېږدم، خو په خواشینۍ سره باید ووایم چې د ((لوونو فصل)) د شعري جونګ تر چاپ وروسته دادی نږدې دوه لسیزې تېرېږي، خو په افغانستان کې د سرونو لو همغسې روان دی. په دې تېرو دوو لسیزو کې زه بیا هم د دې جوګه نه شوم، چې د پښتو شعر او یا هم لنډې کیسې منتخبات چاپ او بیا له تېر سره پرتله کړم. خو اوس چې زه د خپل تېر کړي فرهنګي کار پر بیا راټولېدو او بیا کتنه بوخت یم، نو ددې اثر بیا چاپ او د انټرنټ څپو ته د هغه خوندي کول راته هم ضروري ښکاره شول. که چېرې زموږ نور ځوان فرهنګیان په هره لسیزه کې د خپل شعر منتخبات ترتیبوي، نو دا اثر ورته د هغه وخت د استوګن ادبي بهیر د یوه لس کلن شعري واټن څو غوره بېلګې په لاس ورکولای شي. دا چې دا کتاب هغه وخت

زما د یوه ګران ټولګیوال حاجي خان محمد په مالي لګښت، د خوشال فرهنګي ټولنې د لومړني چاپي اثر په توګه ټولنې ته وړاندې شوی و، نو دلته لازمه بولم چې له ګران حاجي خان محمد او همدارنګه خوشال فرهنګي ټولنې څخه ډېره مننه وکړم، چې دا اثر یې همغه وخت د چاپ له لارې خوندي کړ. د یادونې وړ بولم چې حاجي خان محمد او خوشال فرهنګي ټولنې بیا تر دې وروسته ډېر نور فرهنګي خدمتونه هم ترسره کړي، چې پر خپل ځای یې باید یادونه او مننه ترې وشي.

زه په داسې حال کې چې اوس د خپلو اثارو د خوندي کولو پر کار بوخت یم، له نورو لیکوالو هم هیله کوم، چې خپل هغه اثار چې پر دویم ځلي او یا څو ځلي چاپ ارزي، بیا راټول او چاپ کړي او که چېرې چاپوي یې هم نه، نو د کمپیوټر او انټرنټ حافظې ته دې وسپاري، چې د مرګ له دایمي خطر څخه وژغورل شي، فرهنګي شتمني د ټول ملت مشترکه پانګه ده او موږ ټول یې د خوندي کولو مسوولیت لرو. د همدې هیلې په هیله چې زموږ فرهنګي شتمني د هر ډول ناتارونو له خطرونو او ګواښونو خوندي وي، خپله دا سریزه رالنډوم، دا هم تاسې او دا هم په شپېتمو کلونو کې ((د لوونو فصل)) ، خدای دې وکړي زموږ په هېواد کې نور د سرونو دا لوونه بند شي، په همدې هیله.

څه لو دی د ګلاب ګلاب سرونو په وطن کې
یو اور خو خدایه بل کړې د لوګرو په وزرونو

په درنښت
پوهندوی محمد اسمعیل یون
کابل- افغانستان
۱۳۸۷ل کال- د سلواغې ۶مه

# پیلامه

د سقراط په باب دا خبره ویل شوې چې: ((هغه شعر له جنون سره یو شی باله)) د دغې خبرې تفسیر په لېونتوب سره نه کېږي، بلکې دا خبره کولای شو چې د یوه بل ادیب‌وه او شاعر (ملیتون) په یوې جملې سره تفسیر کړو هغه وایي: ((څوک چې غواړي شعر ووایي باید په خپله مجسم شعر وي)). ځکه نو شعر ویل څه اسانه خبره نه ده، هر څوک چې غواړي په ځان د شاعر نوم کېږدي، تر هر څه د مخه باید هغه د شعر ویلو شعور ولري، د هغه ذهن باید ددې توان ولري، چې ژوند، ښکلا او اړیکي د خپل ذهن د ازمېښتونو او تجربو په مرسته د شعور او تحت الشعور په دنیا کې ووینې ځو بیې هنري انځور زمونږ د احساساتو پر ارامه حالت غوغا راګډه کړي. د یوه ښه شعر، انطباعي رمز په همدغه ټکي کې پروت دی. په پښتو ژبه او پښتني ټولنه کې هم شعر او شاعري ددغه قوم له اند او ژوند، هنر او ښکلا سره تلپاتې ملګری دی، چې تر اوسه یې خورا زیاته وده کړې ده، د پښتو شاعري د اوسنۍ پیاوړتیا یو دلیل دادی چې دغه شاعري لکه د نورو شرقي ملتونو د شاعرۍ په

شان داسې کلاسيکه زېرمه لري چې شاعر يې د تاريخ په هر ځرخ کې له هغې څخه په کمي او کيفي لحاظ فيض او برکت موندلی شي. حميد ماشوخېل نن سبا نه يوازې د پښتو او پښتني شاعرۍ بلبل ياد ېږي، بلکې د خپل کمال په سبب يې په ټوله سيمه او نړۍ کې د شعري بهير رښتيني کاروانيان پېژني او نن يې هم دده شعر دده موشگافي ته دده په خپله وينا د حيرت گوته په غاښ نيولې ده. حميد په رښتيا هم د شعر نعمت يانې هغه تلپاتې لوربينه د پښتنو په برخه کړې، چې په هغې سره د پښتني او انساني اند او ژوند ټول اتموسفير تسخيرولای شي. د هغه شعر زموږ د شعر او زموږ د شاعر لپاره هغه مثال دی، چې د هغه په مرسته د انسان د ضمير په ائينه کې هم اوښکې ليدلای شو، هم شبنم او هم خنداوې. ځکه:

د غفلت په خوب ويده خلق يې ناوري
که ((حميد )) ناري وهي لکه جرس
ديوان(۱۳۲) مخ

په همدې ډول د رحمان بابا د شعر فياض سمندر د ژوند د حقيقت او انساني معرفت په حقانيت کې يو بل ډول احساس او کيف لري چې بې ښه او بده پر زړونو او فکرونو اغېزه کوي او د تسليمۍ غاړه يې د شعر هنگامې ته ږدي:

بیا دې مخ دی جار وتلی څه بلا شوه
دا بلا له کومه لوری راپیدا شوه
دا زما په یار کې مهر وفا نه شته
که دنیا واړه بې مهره بې وفا شوه.

د رحمان بابا دیوان (۱۷۰) مخ

هو:

له مقدمې راتېرېږو او د ((لوونو فصل)) د کرونډو پر درمندونو باندې وراوړو. زموږ د اوسني نسل په اند و ژوند کې دغه فصل داسې فصل دی، چې په عام ډول زموږ د ملت د اوسني عصر حماسه جوړوي، هو حماسه د لوونو حماسه، د درمندونو حماسه، د وینو حماسه او د غربت حماسه، دا ددغه اثر د شعر تګلاره ده او په عمومي لحاظ پر همدې واټ روان انځوریز کاروان دی. په دغه اثر کې د اوسني پښتو ((شعر)) د منشور ټول هغه اړخونه چې د انعکاس قابلیت لري او له یوې رڼایي سرچینه اخلي، په ډاګه کېږي، دغه شعري اثر که موږ د یوه منشور په توګه خپلې مخې ته کېږدو، کېدی شي د هرې ضلعې او هر اړخ په ترڅ کې بېلابېل خصوصیتونه مطالعه کړای شو، په دغه ښکلاییز انځور کې د اوسني شعر ځینې ډېر مهم او د پاملرنې خصوصیتونه لیدلای شو:

په اوسني شعر کې د پخواني شعر خلاف د یوه انځور مسئله هېڅکله نه ده طرحه، په پخواني شعر کې ډېر ځله داسې عنعنه

وه چې یو شعر باید یو انځور په ګوته کړای شي، معمولاً په پخوانیو ډېرو ښو شعرونو کې له دغه چال څخه کار اخیستل شوی، مګر د اوسني شعر په ترڅ کې دا خبره ډېره نادره کار ګڼل کېږي. ځکه اوسنی شعر د انځور شعر دی، کېدی شي په یوه شعر کې د انځورونو امېلونه وویلو او کېدی شي د اوسني شاعر په لسو شعرونو کې د پخوانو دېوانونو په اندازه انځورونه ومومو، تر ډېره حده دا خبره د دغې مجموعې د شعرونو په برخه کې هم صدق کوي، راځئ دلته یو څو بېلګې په لنډیز سره ولولو:

اشنا د موسېدلو حق له موږ نه دی اخیستی
د خپل او د پردي پر موږ د غم مهرباني ده
زما په وران مالت وراني جونګړې وران وطن کې
د مرګ او د سرو وینو دم په دم مهرباني ده

د زړه د پرهرونو د ټکور امید یې نه شته
چې نن په رقیبانو د مرهم مهرباني ده.

که چېرې خبرې ته لږ دقیق شو، نو دې نتیجې ته رسېږو، چې زموږ اوسنی ((شعر)) په تېره بیا د هغه ځوانه برخه لږ دقیقې

تشریح او څېړنې ته اړتیا لري، ځکه دغه انځوریزې غوټې تراوسه هم زموږ په قلمونو او زموږ په وحشت ځپلو ارادو نه پرانیستل کېږي، همدا وجه ده چې په پورتنیو دریو بیتو کې یو د ((مهربانۍ)) انځور داسې پېچلې پدیده ده چې د دغه شعر په ترخ کې په څو اړخونو سره کارېدلې ده او هر ځای خپل خپل انځور ښیي، چې یو اړخ له بل اړخ سره یو رنګي نه لري. په همدغو دریو بیتونو کې هره برخه یو ځانګړی او وچت انځور موږ ته راښیي په داسې حال کې چې پخوانی شعر او شاعري په دې اندازه انځوریزه نه وه، دا هم د دغه اثر څو نورې بېلګې:

جېلوانه!

دا لمدې لښتې مې په ملا باندې په پام وروه
چې دا مې نوې د اختر کالي دي ځیرې به شي
مانۍ د باورونو مې تالا ځکه نن ښکاري
ملګري د یوې لارې یو ارمان معامله ګر دي
لیلا که د ښایست د سوداګرو سره لاړه
زموږ په زمانه کې مجنونان معامله ګر دي.

مخکې مو هم اشاره وکړه چې زموږ د ځوان نسل شاعري زموږ د عصر حماسه ده، هغه حماسه چې زموږ په ټوله شاعرۍ

کې يې د شکل او محتوا په لحاظ ساري ډېر لږ ليدل کېږي، ځکه زموږ د غه حماسه زموږ د مظلوم ولس، زموږ د شهيد ولس، زموږ مهاجر ولس او زموږ د بريمن ولس د دغه عصر د ژوند هغه څه له ځانه سره لري، چې د مظلوم، شهيد او مهاجر ولس د شاعر د زړه او فکر په ژورو کې حلاجي شوي، انځور شوي او شعر شوي دي. هو هغه څه چې د وينو په زړه کې يې يوازې حساسې سترګېويني، هغه څه چې د غم د اوښکو د سمندرونو او سېلابونو تر غرونو هغه خوا يې يوازې همدغه ځوان شعر او شاعر ويلي، دغه څه په دغه اثر کې ليدلای او لوستلای شو.

دا کلی مه ورانوئ،
ګورئ چې هلته د دې تورې تروږمۍ له غېږې
ساړه زګېروي جګېږي
سوزمن اواز راځي
او اميدوارې ميندې
د انتظار د بڼ د سرو ګلونو لارې څارې
دا کلی مه ورانوئ!
دا کلی مه ورانوئ! (څاڅکی، څاڅکی ۲۳ مخ)

په هر صورت ! د دغې مجموعې د شاعرانو پر وړاندې يو مهم مسئوليت هم شته، هغه دا چې: دغه کيفيت چې په دغو اشعارو کې او د دغو شاعرانو په نورو شعرونو کې ليدل کېږي، بايد نور هم لوړ کړای شي او خپلې شاعرۍ ته بايد نوره هم ښکلا او ځلا د تلپاتې ډالۍ په توګه ور په برخه کړي، نن سبا يو شمېر شاعران زموږ په افغاني ادبي بهير (پښتو او دري) کې داسې هم شته چې بې وخته په وچ غرور څنګه په پچه سپاره شوي، نو بيا يې د کشمير د ليدو او فتحې نارې بې له دې چې د زمان پر وړاندې امتحان ورکړي پورته کړي دي، په دې هيله چې زموږ ځوان شاعر زمان او زماني ازموينه په خپله ايجادي برخه کې له ياده ونه باسي.

په درنښت

پوهنمل خالق رشيد

د کابل پوهنتون د فرهنګي شورا رئيس

# دا کلی مه ورانوئ

دا کلی مه ورانوئ !
دا کلی مه ورانوئ !
ګورئ چې هلته د شنو ولو د شنو سیورو لاندې
ګورئ د شنې ویالې ترخنګه د جلګو د پاسه
یو کوچنی پروت دی
یو کوچنی ویده دی
او د ورې لوپټې لاندې
په خوب وړو سترګو
د ناز په غېږه کې کوچنې شینکي خوبونه ویني
دا کلی مه ورانوئ !
❋ ❋ ❋

دا کلی مه ورانوئ !
ګورئ چې هلته لکه زرکې زموږ د کلي نجونې
ګورئ چې هلته د بامو پر سر نورسې پېغلې

کتار کتار
د لمر تر وړانګو خپل پیکي جوړوي
او په مینو ژبو
د پېغلتوب غوږ کې د ځوان هوس سندرې بولي
دا کلی مه ورانوئ !

***

دا کلی مه ورانوئ !
ګورئ چې هلته له هغو سپېرو کوډلو ځنې
ګورئ چې هلته ددې تورې تروږمۍ له غېږې
ساړه زګېروي جګېږي
سوزمن اواز راځي
او امید واري میندې
د انتظار د بڼ د سرو ګلونو لارې څارې
دا کلی مه ورانوئ !
دا کلی مه ورانوئ ![1]

---

[1] څاڅکي څاڅکي، د لیکوالو ټولنه، ۱۳۲۸ل کال، ۲۲-۳۲مخونه.

# د میلاد په شپو کې

ای ! ددې شنه اسمان په غېږه کې خوب وړې سپوږمۍ !
ای ! په دې شپو کې د پردېسو د سفر ډیوې !
ای ! د گلونو او د پېغلو ، پېغلو وینو پري !
ته راته گورې؟
ته راته گورې چې د کړیکو او تیارو ننبه شوم؟
او د ساړه ژمي خوني او گنهکار ابلیس
زما د گلابو او نرگسو باغ کې اور وکاره !
ته راته گورې؟
ته راته گورې چې محل مې له کارغانو ډک شو ؟

او په ويالو کې د هيليو بچي وسوزېدل !
او زمورږ د کلي ميندې
د ميلاد شپو کې (بې لاسو او پښو بچيان زېږوي)؟ !
ته راته ګورې؟
❋ ❋ ❋
ته راته ګورې چې مې ټول کلی چاړه چاړه دی؟
خلک په نوکو او برچو د يو بل سترګې باسي !
او د مالت نجونې
په خپلو تورو تورو څڼو کې ځوزان ټک وهي؟
آه
آه نازولې سپوږمۍ !
آه د رڼا مورې ![1]

[1] ځاځکي ځاځکي، د ليکوالو ټولنه، ۱۳۲۸ل کال، ۹۲-۹۳ مخونه.

افضل ټکور

# دوه پوښتنې

مور تپوس راځنې وکړو
کوم څیزونه دې خوښېږي؟
ما ځواب کې ورته ووې:
درې څیزونه مې خوښېږي
چې دي:
ژوند ، مینه او حسن
هغې بیا پوښتنه وکړه
کوم څیزونه دې بد ایسي؟
ما ځواب کې ورته ووې:
درې څیزونه مې بد ایسي
چې دي:
مرګ، وینه او ظلم، [1]

---

[1] ژوندون مجله ۱۳۶۸ل کال، ۲-۲ ګڼه، ۴۲مخ.

افضل ټکور

# غزل

په موږه بد نصیبو د تورتم مهرباني ده
د یار د تورو زلفو پېچو خم مهرباني ده

دا موږه جل وهلي یې د ګوټ په تمه مړه شو
په غیرو غمازانو د صنم مهرباني ده

یارانو د دار لوبه خو لا نه ده ختمه شوې
چې نه مرو دا په موږه د ستم مهرباني ده

دا اوښکې مې د سترګو څه ګیلې څه اسوېلي شي
د وخت رابانډې دا په هر قدم مهرباني ده

اشــنا د موســېدلو حــق لــه مــوږ نــه دی اخیســتی
د خپــل او د پــردي پــر مــوږ د غــم مهربــاني ده

زمـا پـه وران مالـت ورانـې جـونګړې وران وطـن کـې
د مــرګ او د ســرو وینــو دم پــه دم مهربــاني ده

د زړه د پرهرونــو د ټکــور امیــد یــې نــه شــته
چــې نــن پــه رقیبــانو د مــرهم مهربــاني ده.(۱)

(۱) له (پرهرونه او ټکورونه) شعري مجموعې څخه.

# دا د ګناهو خیری

ویې مرورې یویې سه
دا د ګناهو خیری
چا به له پیالو سره غمونه اړولي وي
چا به د نیمرسې ګناهکارۍ له تېر نه شراب څښلي وي
دا د بېخودیو استفراق درسره ومینځه
اوه څپې،
اوه ګامه پسې پورته کړه
پرې مینځه... !
دغه د صادقو جنګیالیو د عورتو د لامبو خیری
وروسته د ګناه له یوې تورې شپې

وېږې مروړه يويې سه
دې قمارخانو نه د سګرټو پاتې شوي کاغذونه
دا غليظ لوګي
اوه شپې
اوه ګامه پسې پورته کړه
روڼ او پاکيزه کړه د پايتخت ګوګل
له چل و قسمونو نه
له شک او ګمانونو نه.

۹/۳/۱۳۶۹

احمد تکل

## هیله

جېلوانه!
دا لمدې لښتې مې په ملا باندې په پام اوروه
چې دا مې نوې د اختر کالې دي...
ځیرې به شي [1]

۱/۳/۱۳۶۹

---

[1] احمد تکل، قلم جریده، ۱۳۶۹ل کال، ۲ ګڼه.

# د قبر عذاب

ماته ملا ویل: (عیسی د خدای رسول یوه ورځ
له هدیرې دوه مړي،
بیا راژوندي کړل او پوښتنه یې د حال ترې وکړه
نو پرهېزګاره مړي
چې یې له مرګ نه څو پېړۍ تېرېدې
ویل: (په ما عمر شو تېر لکه یوه خوله خندا او یا څپه د نسیم.)
خو ګنهکار مړي چې درې ورځې یې شوې وې لا
له دې نړۍ نه د تلو
ویل چې دومره ځورولی یم ((د قبر عذاب))

چې د پېړيو شمېر يې،
نه شم شمېرى تېول عمر
مورې ته چې اوس د نړۍ ارته او پراخه سينه
شوله د ګور په شانې
او دا اوچت بې انتها زمردين اسمان چت
مو شوه تخته د لحد ،
مورې چې د ژوند په نړۍ مړه شو د تيارو له لاسه
او دوه اړخيز فشار د ګور د دېوالونو په شان
مورې زبېښي په منځ کې
او زمورږ څو کړۍ ژوندون چې شو (د قبر عذاب)
نو دا په کومه ګناه؟
مورږ خو يوازې ژوند کې مينه کړې
او بېګناه يو او سېدلي خپلواک ![1]

[1] اخبار هفته، ۱۳۲۸ کال، ۲۳ ګڼه، ۱۴ مخ.

ابراهیم شینواری

# ربنتینی انځور

هر څو مره چې تورې، تورې لړې
د غره خواوشا راټولې شي
ما د ځلېدونکي لمر شوخو پلوشو لاندې،
هغه وخت چې شین اسمان خندل ماته،
ټولې د غره ونې ببلې، ببلې ښې لیدلې دي
هلته ما په ښه کړې
چې، تور ښتر یې زلفې وې،
سیند یې د اوبو پر مخ روان و په مستۍ او عشق
شنه بوټي خالونه وو د غرونو، ځلېدل ښکلي
نه وځي له مغزه نه مې،
هماغه ربنتیانی انځور
او، څرنګه چې دي،
زه یې هماغه ډول پېژنم ! !؛ [1]
۳۰/۲/۱۳۶۷

(۱) پلوشه جریده، ۱۳۶۹ل کال، ۶ګڼه.

اسدالله اسد

# ګل سپرلی

شـــونډې دې نشـــې نشـــې زلفـــې دې دامونـــه کـــړه
تبـــر لکـــه ورېمـــه پـــه مـــا دا ســـپېره وختونـــه کـــړه

تـــاو دې لـــه بڼـــو نـــه شـــم و لـــه دا تېـــره غشـــي
مځکـــه د زړګـــي زمـــا رنـــګ پـــه رنـــګ ګلونـــه کـــړه

تـــورو ګـــورو وربځـــو کـــې مـــخ د ســـتورو نـــه ګـــورم
جـــار دې شـــم وړې ســـلګۍ پورتـــه مـــې غړونـــه کـــړه

غـوا ړه چـې شـېبه شـېبه سـتا د هـر يـو ګـل رنـا
دې تيـــارو ګوټونـــو تـــه بـــل د زړه داغونـــه کـــړه

ای د زمــــانې د لاس ګـــــل ســــپر ليــــه دا وايــــم
دا ســـپېره اغـــزي ګـــلان کـــانې مـــې لعلونـــه کـــړه

مـــرګ بـــه پـــه مـــا واړوي خـــاورې د ډېـــرو پـــه څېـــر
ژونـد يـې د اسـد خـو بيـا دوه سـترګې جامونـه کـړه.[1]

(۱) ژوندون مجله، ۱۳۶۷ل کال، لومړۍ ګڼه، ۲۵ مخ.

# ژوندي يادونه

د شپېو مياشتو کلونو
پاتې شوى يو انځور دى
لا يې اوس د زړه په سترګو
په تيارو کې ننداره کړم
هلته
دنګ دنګ چنارونه
پورته شوې هسکه غاړه
د ګلابو جونه هسې
پټه خوله په برم ولاړ دي
او

د دوبي په ماښام کې
د اسمان سپین مخې پېغله
د ختیځ د غره له شانه
را اوچته په نخرو شوه
د کلا له دېوالونو
د چنار له هسکو څوکو
دا هغې ته، هغه دې ته
څه بې واره په کتو شوه
د ماښام تیاره خوره وه
هلته ستوري په ځلا وو
دلته بل وو مشالونه
زه د شنو ونو د لاندې
د اوبو غاړې ته ناست وم
د مرغانو اوازونو د ماښام چوپتیا
کړه ماته
او
وږمو له هره لوري
ژوند ښنونکې سارا وړله
زما خو، ستومانه سترګې
لوبېدلې ښوربېدلې

د سپوږمۍ په پلوشو کې
ګوندي دلته يې يادونه
راتازه شي د ليدلو
د هغې سپوږمۍ د وړانګو
چې يې اوس به ننداره کړي
دا سپوږمۍ او چنارونه ![۱]

(۱) ژوندون مجله، ۱۳۶۷ل کال، ۴ګڼه، ۱۸مخ.

# د مینې یادګار

نه راته نوم او نه نښان پاتې شو
یادګار د مینې لوند ګرېوان پاتې شو

چې په ښېرو دې ځوانیمرګ نه شومه
سخت مې په زړه دغه ارمان پاتې شو
څومره شتمن دي لېونیان د مینې
قیس نه میراث لوی بیابان پاتې شو
څه بېکسي شوله راپېښه خدایه
زړه هم کوڅه کې د جانان پاتې شو

ستا د غمزو او اشارو له لاسه
نه راته دین او نه ایمان پاتې شو.[١]

(١) نغري او سپېلني، ۴۴-۴۵ مخونه.

# د اوبو رنګ

زه چې کوچنی وم، د اوبو په مانا نه پوهېدم
کله مې سترګو اوبه سپينې،
کله ژېړې
کله شنې ليدلې،
او همېشه به مې له ځانه پوښتل
چې اوبه څه رنګ لري؟
خو يوه ورځ
په ښوونځي کې
د کيميا ښوونکي
زموږ ټولګي کې په تخته وليکل:

چې: (له دوه او اواچ) له جمعې نه اوبه جوړېږي
او اوبه،
رنګ نه لري،
خو په هر لوښي کې چې وا چول شي
د هغه رنګ اخلي؛
او اوس
له ډېرو کلو وروسته
لټومه
د کیمیا ښوونکی
چې ترېنه وپوښتمه:
تا خو ویل چې اوبه رنګ نه لري،
زموږ د کلي
د ویالې
اوبه نو ولې
سرې
دي؟؟[1]

(۱) وروستی ټکی، ۱۳٦۷ل کال، د لیکوالو انجمن، ۳۷-۳۹مخونه.

# د مينې اور

لګېدلی مې په زړه د مينې اور دی
سوزېدلی مې د ځوانو هيلو کور دی
ټوله شپه د تورو سترګو تصور کړم
رانه ورک مې د نمجنو سترګو تور دی
د خمار دود مې ځګېږي له ليمو نه
ساقي ګوره بيا مې خم دربانده پور دی
په لمن کې ټولوم د تومت کاڼي
خدايه دا څرنګه مينه، څه پېغور دی
حوادث به يې هېڅکله غلي نه کړي
چې په سر کې مې د چا د مينې شور دی
په توبو مې پښې کښېنودې زاهده
بيا مې عزم د مغرور اشنا په لور دی.[1]

(۱) د تيرو په ذهن کې، ۱۳۶۳ل کال، ۱۳۶۱ کال، ۸۹مخ.

لعل پاچا

# سپېنتې

دلته د هغې کوڅې ګوټ ته ګورئ
يو دوه جوار ګره ناست دي
او په تېرو ، تېرونو کانو باندې، زموږ د تن غوښې کړي ببلې ځانته
نشه او مست مو دي د زړه په وينو
له خندا شنه دي او د سترګو په کونجو کې، سره ګوري خاندي
لاس کې نيولي دي زموږ د تن هډوکو سپېنتې
او پرې کوې زموږ د يار په لمسه
د سپېنتو ، سپېنتو لوبه
يو بل ته ګوري سره
په مينه، مينه باندې
لو به روانه ده لا. [1]

---

(۱) درفش جوانان، ۱۳۲۹ل کال، ۱۴ ګڼه

لعل پاچا

# د پرون سندرې

اشنا زما زړګی خو د پرون سندرې وایي
دې نن ته پر سکروټو د ازمون سندرې وایي

مرګیه کډه وکړه نور زموږ له دې مالته
چې دلته تاندې لښتې د ژوندون سندرې وایي
د مینې په وطن کې د مجنون پادشاهي ګوره
لاسونه یې تک سره دي د قانون سندرې وایي
راځي به دې تورتمه د لمن څیرې کېدو ته
په لار کې د منزل مو سباوون سندرې وایي
یه وخته څه دې وکړه د ښایست بڼ کې زموږه
چې دلته هر یو ګل نن د جنون سندرې وایي

زړګیه ګیله مه کړه له پردو ځنې ته هسې
نن دلته د پښتو مرګ ته پښتون سندرې وایي.

# اپت

منم
غاټولو
د ازغو لو د پلوسو الماسي څوکې د لمر په وړانګو وسېزلې
او د نړۍ د هسکې څوکې
په هک ، څک بام يې جنډې د سپرلي ودرولې
خو لا سپوږمۍ
د شپې له تيو د ناز شونډې ايسته کړې نه وې
چې د کارغانو دوزخي وزرې وپړکېدې

او د خزان سرې سیلۍ د سهیل لوري ته راوبهېدې
نو ځکه،
دلته د رېدیو او شینلیو په دې شنه لمن کې
د مارکنډو او خرېړو واکمني
له توتکیو او له زاڼو نه د ژوند په بدل
غواړي وزرې
او د وینو پاڼې پاڼې ګلان.[1]

۷/۲/۱۳۶۹

(۱) قلم جریده، ۱۳۶۹ل کال، ۱ګڼه

# جګړه

خپلــو ورتــه خمــلاوه پــردو پــه وینــو ولاړه
پت خو د پښتو مې پښتنو مې پښتنو په وینو ولاړه
دغــه کوربنــو خــو د نغریــو ســوي وځنــډل
خــدایږو چــې ملګــرو ! مېلمنــو پــه وینــو ولاړه
ځیـرې لېونـو خو هر چا خپـل، خپـل ګرېوانونـه کړه
دا مالــت ښــاغلو او درنــو، پــه وینــو ولاړه
جـوړ د غــم جګـړ و د چـا نـوکې د چـا کـوکې وې
هــم تنکــو ګلونــو هــم ازغــو پــه وینــو ولاړه
لــور و د لــوګري پــه زړه ننــوت بیــا وواتــه
یــو ځلــې ګنــاه او بیــا توبــو پــه وینــو ولاړه
څـه پوښـتې پـامیر نـه چـې لمـن دې ولـې ځیـرې ده
یــو ځلــې لېوانــو او بیــا ســپو پــه وینــو ولاړه.

۴/۴/۱۳۶۹
کابل

ملوک رغون

# زما برخه

چې یې زموږ د مینې ساه واخیسته
ځانته سودا یې د ګناه واخیسته
چا ورته دومره هم ونه ویلې
چې دې رضا زموږ له چا واخیسته
زړه خوږې مینې مې د یار له کتو
خپلو دردونو له دوا واخیسته
نکاح په پټه، پټ په پټه وشوه
لکه چې بده دې ملا واخیسته
رقیبه یاره ! ددې زړه ((رڼا )) مې
تا له سینې ولې په غلا واخیسته
کله چې زموږ د جدایۍ ناره شوه
ما مې له یار ځنې دعا واخیسته
د خوشالۍ او غم د وېش په ورځې
ما له تقدیر ټوله ژړا واخیسته.

# وروستی سلګۍ

پــــه تیــــاره تیــــاره ماښــــام کــــې
د زړې کــــوټې پــــه ګــــوټ کــــې

د شــــلېدلي کــــټ پــــه خــــوا کــــې
د ســــړې چرګــــۍ پــــه غــــاړه
د نــــاروغې بــــوډۍ ســــر تــــه
نیمــــه ســــوې غونــــدې شــــمه
پټــــه خولــــه پــــه چغــــو چغــــو
غلــــې غلــــې شــــان ژړېــــږي
کلــــه یــــو خــــوا کلــــه بــــل خــــوا
شــــي کــــږه وږه لــــه غمــــه
کلــــه لپــــې لپــــې اوښــــکې
ثثــــوي پــــه ځــــان لــــه بــــره
کلــــه ثــــر ثــــر اواز وکــــړي

پتنګـــان پـــه ځــان ســـتي کـــړي
کلـــه غلـــی شـــي غـــوږ کېـــږدي
د بـــــوډۍ پـوښـــــتنه وکـــــړي
خـــو ناروغـــه بـــوډۍ هلتـــــه
ځنکـــدن کـــوي مـــړه کېـــږي

شـــمعه هـــم د بـــوډۍ خـــوا کـــې
پـــــــه ژړا ژړا ســـــــــوزېږي.

۸/۱۱/۱۳۶۸

# د زنګ پتري

((سپرلیه راشه)) په دې ګلو راشه
په شنو غندلو په بمبلو راشه
زموږ د باغ په ونو
د کشمالو په څوکو
لا خو توپان د ژمي
لا خو خمار د وربځو
د توري شپې له زړه نه
بیمار، بیمار پاڅېږي
د سرو غوټو په شونډو
د لمر شغلو ته مخکې
پتري د زنګ وهي.

۸/۴/۱۳۶۹
کابل، خیرخانه

# د مور ليک ته

ليک مې د مور نه دی زده
چاته بې ويلې وي
چاته بی زاري کړي
چې راشه زما ګران زوی ته
وليکه !
زه روغه يم ته څنګه يې !
ياد خوبه دې وي !
چې شنه پاڼه
زمورږ د کور له ونې
په زوره چا شکولې وه

ژړل به دې
تاتې-تاتې دې ډېر وکړه
ويده شولې
نو ګرانه مينه ګرکې مې
راوليکه !
زه روغه يم، ته څنګه يې ![1]

۴/۲/۱۳۶۱

(۱) سيلۍ، ۱۳۶۸ل کال، د افغانستان د ليکوالو انجمن، ۷۱-۷۲مخونه

# د پېرې ګالیله

ما پخپلو سترګو ولید
هم هغه و
ببر سر ګرېوان څيرلی
لاس او پښو کې زنځيرونه
څو پاګانو يې خندلې
ويلې دا !
دا لېونی دی

پرېږدئ پرېږدئ چې ګونډه شي
په درنو درنو ورنو نو
خو ده !
ده د ځمکې غوږ کې ((هو)) کړه
درته نه مې ویلې ګرانې !
ودې نه لیده څه وشو !
څه ! ته څه ! لنډوه لارې
((که زه وم که نه وم نه وم)).[1]

(۱) جرګه مجله، ۱۳۶۸ کال، ۶ ګڼه، ۴۹مخ.

# غوټه ونه

زما نيکه کيسه کوله
ويل دا لويه ونه ګورې
چې ترې لاندې شنه وياله ځي
دا سپېرې دېرې وينې
د درنو ناستو وستل دی
د جرګو مرکو ځای دی
په پېړو پېړو کلونه
که به چا زموږ په سيمه
که به چا زموږ په خاوره
که به چا زموږ په لره

که به چا زموږ په بره
د تېري لاس اوږدولو
یا به یې شرم جوړولو
وو تاوده به وستلو نه
زما یاد دي بچی دلته
ددې غتې ونې لاندې
دغه ځمکه زوښېد له
سره تول وو ولسونه
چې څه تره دلته وشي
((هو )) پې وشي د سپینږیرو
د خدای زور د خلکو زور شي
سا او وینې شي د نرو
کاشکې دې کیسې کولې
څه یې ویلې له پخوا نه
چې په ((گنه )) کې یاد بړي
د ویاړونو له انسانه.[1]

(۱) باولی، ۱۳۶۸ل کال، د اطلاعاتو او کلتور وزارت، ۳۸-۳۹مخونه

عبدالمالک بېکسیار

# غزل

چې یې په سترګو کې ښکاره نه شولې
پوه شوم ارمانه چې پوره نه شولې
خیال مې د عشق ښکلی جهان په څه شو
اشنا چې ته په کې د ېره نه شولې
یا خو څه شوي یا څه کېږي ګلې
نن په ګودر خوره وره نه شولې
که پښتو وي راکې نو بس دی همدا
ما چې در وکاته، ته سره نه شولې
دا خو پښتو مغله نه ده پاتې !
پښتون دې خرخ کړ غرغره نه شولې
ستا په ښایسته خمارو سترګو مې څه
د بېکسیار په ننداره نه شولې.[1]

(۱) د نظر په څوکو له ناچاپه شعري مجموعې څخه

عبدالمالک بېکسیار

# د زهرو پیالې

پرون مې بیا ،
د خپلې مینې په سپېره هدیره
ستا د شهیدو وعدو ،
د شناختو څنګ ته په شېبو وژړل

❋ ❋ ❋

او د ګودر خوا کې د وچې ونې
چې د چوغکو په بدل کې یې اوس،
په وچو پاڼو کې ساکښو خپلې ځالې کړي
د اوښکو سیند کړ جاري

❋ ❋ ❋

شېبې مې
یو بل پسې، لکه د زهرو پیالې
ستا په ترخو یادو کې
له ستونې تېرې کړلې.[1]

---

(۱) د نظرپه څوکو له ناچاپه شعري مجموعې څخه

# د نظر باران

رابانـــدې بیــا چــې نـــن ازغـــي را اوري
د چـــا نظـــر مـــې پـــه زړګـــي را اوري

اوس مـــې د اوښــکو چــاره ګرانـــه شـــوله
لکــــــه بـــــاران د پســـــــرلي را اوري
نــامردې څنګــه دې ښــېرې شــوې پــر ځــای
چـــې اشـــنايي مـــې پـــه تنـــدي را اوري
شـــیخه مهــراب نــه ســر راپورتــه نــه کــړې
د ګـــودر خـــوا کـــې شـــنه منګـــي را اوري

پـــر بېکســـیار غریـــب اســـرو اســـرو کـــې
د ګـــل پـــر ځـــای همـــېش ازغـــي را اوري.[1]

---

(۱) د نظر په څوکو له ناچاپه شعري مجموعې څخه

# د تېغونو لو

نه... !
هېڅکله ذهن مې دا نه قبلوي
باور مې هم داسې منلی نه شي
چې ددې واټ دپاسه
د پښ دوکان کې هڅو
د کرلپاره سپاره نه جوړېږي
لکه چې ګرم نه یمه !
زه د رښتیا له څنډ نه
په خپلو دواړو غبرګو سترګو وینم

چې پښې په ببړه، ببړه
د تسپارونو پر ځای
دلته د کر، کیلې، باران موسم کې
د شنو تېغونو د رېبلو او د ((لو)) لپاره
له سرې او سپینې نه ((لور)) جوړوي
او په ((لوګرو)) یې ارزانه پلوري.

۳۱/۴/۱۳۶۲
کابل

عارف خزان

# د حجرو شهادت

زموږ د کلي له سپېرو نغرو نه
نور د اورونو لوګي
لکه بيرغ چېرته د بام د پاسه نه رپېږي
د چينو سترګې د حجرو د شهادت په وير کې
له ډېره غمه ړندې شوي او ښکې نه تويوي
او کلی کوز له پاسه
جوړ د بادونو د مارانو د نڅا جشن ته
په ډېر هيبت
کنډر،
کنډر
ولاړ دی.

۲۸/۷/۱۳۶۸
کابل

# اوښکې

څه تودې تروې اوبه دي
د ګرېوان پر لور بهېږي
ابدي سکون ته درومي
له ژوندۍ سترګې بېلېږي

❋ ❋ ❋

له هر څاڅکي سره مله وي
د مرموز جهان غږونه
پر اشنا لارو وراخلي
نابلده قدمونه.

د کمزورې دنیا ژبه
د قدرت پښنو ته ورلوېږي
د احساس بیده نغمه ده
په بانهو غږول کېږي

***

دا شربکه ګونګې ژبه
هرې سترګې ته اشنا ده
دا د هرې مینې کور دی
دا د هر نفرت غوغا ده.(۱)

(۱) له ورکې مېنې څخه، ۸۲مخ، ۱۹۷۹م کال.

# غزل

دلته ويني هلته ويني ټول وطن زخمي زخمي شو
د ګلابو پاڼې ژاړي چې ګلشن زخمي زخمي شو
د وبا استازی ګرځي پرې کوي مری د حسن
د سپرلو ابی شوه بوره هر چمن زخمي زخمي شو
له اسمانه راوريږي دالله(ج) د غضب کاڼي
سمن سر ورته نيولی نسترن زخمي زخمي شو
پسرلی نه و وبا و چې هر باغ کې يې پل کېښود
هره ونه هر يو ګل او هر سمن زخمي زخمي شو
هادي اوس يې نو غمونه ښه په خلاصه ټنډه ګاله
دا خو ستاسو لېونتوب و چې هر تن زخمي زخمي شو.

۳۰/۲/۱۳۶۹
کابل

# غزل

وختــه کوڅــه کــې وو هــر لــور لېــوني
اوس مــو دېــره شــو لــو پــه کــور لېــوني

کــه يــې هــر څــو ســرونه پرېکــړه جــابر
ګــوره چــې زېــږي نــوي نــور لېــوني

خدايــه ! محفــل ورځنــې تــش شــو څــه لــه
شــړي مالــت نــه پــه هــر تــور لېــوني

هغــــه د قــــيس د مدرســــې طالبــــان
دلتــه ژونــدي شــولو پــه ګــور لېــوني

هــادي هغــو پــوري بــه ژاړو مــوره
چــې څــو يــاد يږي دا څلــور لېــوني.

فضل الهي ګران

# د رڼا نیالګي

هره خوا جان او جانان دی کوه طور دی
یو بې حده خوږ جهان دی کوه طور دی

عشق او وجد دی مستي ده د انوارو دنیاګۍ ده
چې موسی ورته حیران دی کوه طور دی

تجلي مې د جانان دي ددې زړه د عرش له پاسه
مینه مینه کن فکان دی کوه طور دی

ستا د وحي نه قربان شم ای د عقل جبرائيله !
لږ خو وګوره توپان دی کوه طور دی کوه طور دی

ميخواره مجنونان واړه يو له مخې ميزوبان شوه
اوس د مينې امتحان دی کوه طور دی کوه طور دی

دې سرکش ناري جهان ته د مهدي وتل په کار دي
څه ښايسته نوري ارمان دی کوه طور دی کوه طور دی

چا ويل چې د ګران شعر راپرېوتی له اسمانه؟!
ګرانه ستا زړه څراغان دی کوه طور دی کوه طور دی.

۱۳/۲/۱۳۶۹

# ژوبل دردونه

اوښکو کې د چغو تندرونه وینولی شم
سترګو نه د کړیکو ټول خوبونه تښتولی شم

وینې، وینې چغې د شپو مې ژوبلوي مدام
چغې د قلم نه لکه وینې غورځولی شم

ته که چاودې پوندې او شکېدلې ګرېوان نه ګورې
زه ژوبل دردونه د چا کله هېرولی شم

دا ببـر سـرونه وچـې شـونډې او زخمـي هيلـې
تـل د عـاطفې پـه نرمـه غېـږه کـې نيـولی شـم

سـوزند فريادونـه او ويرونـه شـول لمبـه لمبـه
ژونـد د بې احساسـو پـه لمبـو کـې سـوزولی شـم

ټـول ګـلان د چغـو پـه وربـل کـې د خـوږې مينـې
ډېـر پـه مينـه مينـه لکـه پېغلـې زنګـولی شـم

ونښـوه ګرانـه پـه غـزل کـې اورنـۍ چغـې
ژوبـل اميدونـه پـه نغمـو ټکـورولی شـم.[1]

---

(۱) د هيلو ګودرونه، ۱۳۶۵ل کال، د ليکوالو اتحاديه، ۱مخ.

# د نور وږی

راشه زما،
د سوځېدلو امیدونو،
د باغچې
مړاو غوټیو باندې
د خپلو سترګو د موسکاوو
د عطرونو پرخې
په شپېو وروه
چې مې د هیلو ګلان
د نور د وږو
نوراني لاروکې

د غوړېدو په خاطر
ستا د موسکاوو سپينې لارې څارې
راشه زما،
غېږه کې وغوړېږه.
هر مازيگر
د لمر د شونډو په رنگ
د سره شفق په مخملينه پاڼه
ستا د بدن پرتابلو
د خپلې مينې انځورونو سره لوبې کوم
ستا د تابلو په غنمرگ بستر کې
ستا پر ورېښمينو مړوندونو باندې
د ستا د زلفو د عطرونو شال پر سر غوړوم.

۱۳۶۸ل کال، سلواغه

# د ځنګل جنازه

دا راټول شوي لوګي
پر خپلو سترګو اوږو
غواړي زموږ د کليوالو د ځنګل جنازه يو سي چېرې؟
د تورو وربځو شاته،
هلته چې ستوري د سپوږمۍ کاله کې
نور د ځنګل د شينکو ونو د شنو پاڼو شنه بويونه اوربدلی نه شي
اسمان نو چاته غوږوي لمنه؟
دا لمر ليدی شې که نه؟
په خپلو سپينو وړانګو؟
د کومې مينې مرثيې غږوې؟
توتکې زېری د سپرلي راکوي
خو لا په شونډو کې يې
مات شوي نه دي د سکوت مهرونه.

پروین فیض زاده ملال

# پردی ساقي

کوڅه هغه ده خو صنم نه شته
د زړه پرهر ته مې ملهم نه شته
رانجه ژړېږي د بڼو پر څوکو
چې د جانان مې پرې قدم نه شته
د شونډو پاڼې شولې ترمې ترمې
ساقي پردی، دی څه يې غم نه شته
سپوږمۍ غمجنه شوه پر بام نه راځي
د ځلېدلو يې پرتم نه شته
کږه وږه لکه د څانګې شومه
سپرلی بيده د وږو دم نه شته.[1]

۱۳/۵/۱۳۶۷

(۱) ژوندون مجله، ۱۳۶۷ل کال، ۴ګڼه، ۵۰مخ.

صفیه صدیقي

# د محبت ګلونه

ما د الفت ځولۍ ځولۍ ګلونه
د عقیدت له باغه بیا راوړي
بیا مې ګېډۍ جوړې د سرو ګلو کړې
ستا په پټکي په خپل وربل کې یې ږدم
پاتې ګلونه به غونچې غونچې کړو
د چا په دواړو پښو کې د دې غونچو ګېډۍ ګېډۍ به کېږدو
بیا به په ګډه ورشو
هغه مالي ته چې ګلونه کري
د همدردۍ او وفا د صداقت او مینې
خواږه تخمونه کري
موږ به په ګډه ورته سلام ووایو
ته د پټکي ګلونه زه د وربل ګلونه
سره جوړه به یې کړو

د زړه له کومې به يې د هغه پښو کې کېږدو
بيا ورته وبه وايو
مالې ګلونه کره په هغو زړونو کې چې
د ښارو د ښتو په شان وچې سپېرې پرتې دي
د دغو کلکو زړونو د دې سپېرو ډاګونو
هوا بدله کړه ته فضا بدله کړه ته
ورته رڼا وبښه د رنګارنګ ګلونو
بيا به په ډېره مينه
د هغو زړونو ښارو د ښتو نه به
د محبت له ولې او به په لپو راوړو
بيا به خړوب شي هغه
په کې به وټوکېږي د محبت ګلونه.[1]

۹/۵/۱۳۶۵

(۱) لوپته، ۱۳۶۷ ل کال، د ليکوالو انجمن، ۸-۹ مخونه.

# د حقیقت ډولۍ

سترګې مې ستا د سترګو
د شنه اسمان په زړه کې
د وفا ستوري ګوري
زما د سترګو زړه کې
د امیدونو غوټۍ
په نخښدلو شولې
د شنه اسمان په شاوخوا سیمو کې
غمازې وربخښي راغلې
څو د باران پلمه شوه جوړه ورته
زما له سوي زړه نه

يوه سيلۍ پاشېده
لا رڼه نېغه د اسمان زړه ته ورننوته
خو بيا يې وليدله چې
نرۍ، نرۍ باران را وورېده
هغه ګلبوټي د غوټۍ شول خړوب
ګلان يې وسپړېدل
بيا د خيالو ناوې مې
د حقيقت ډولۍ کې
د واقعيت لوېي وراوې سره
د نوي ژوند په کاله ننوته.[1]

(۱) اخبار هفته، ګڼه ۲۵، ۱۳۶۹ ل کال.

# غزل

زمــا د اوښــکو د محــل خمونــه مــه مــاتوه
د غــم فنــا د میکــدې جامونــه مــه مــاتوه

ګوره ټوټې به یې ونه نیسي کوشېر د عذر
په سرو منګولو کې نیولي زړونه مه ماتوه
پرېږده مالي چې لږ د ګلو ننداره وکړمه
د زړه په سر کې مې اغزي غمونه مه ماتوه
د ښه نظر په خاطر تل درځي د سر په سترګو
د هیلو بڼ کې د احساس ښاخونه مه ماتوه

ماته ښې یادې دي(یاري) ستا ټولې کړې وعدې
په یارانه کې دې هېڅ وخت لوزونه مه ماتوه

زرین انځور د هېواد ځوان نوښتګر لیکوال دی. سره له دې چې د لیکوالۍ زیاته برخه یې پر کره کتنې، کیسه لیکنې او څېړنې متمرکزه د ه، خو په وروستیو لسیزه کې یې زمونږ شعر ته د یادونې وړ خدمت کړی دی او کله کله شعر هم لیکي، دلته یې یو ټوټه شعر ددغې مجموعې د ښه اختتام لپاره راوړو.

ټولو ته په مینه
زرین انځور

## مخه ښه

یوه شېبه ده
عجیبه نه ده، یو غزل د جدایۍ دی
یو غمګین شانته پرتم دی
عجیبه ده،
را وربړي د وصال له شنه اسمانه تندرونه
او لګېږي،
پرې لګېږي د مینو ټول ناخواله امیدونه
خدایه خیر کړې، خدایه خیر کړې
یوه شېبه ده،
شېبه نه ده، د یو عمر پیلامه ده
یو عجب ټکی د کرښې

ورپسې بله ليکلې
خو لوستل ددغې کرښې
لا يې بله تماشه ده
هلته پټه
د سرسام زمان د پاڼو هديره ده
بې لوستلو ډېرې پاتې
ناليکلې ډېر سپينې، سپينې پاڼې
دا شېبه، دا سې شېبه ده
شېبه نه ده هديره د يو ارمان ده
زما دا شېبه ناخوښه، دا عجيبه شان لحظه ده
لکه تې خور ماشوم جدا چې شي په زور د مور له تې نه
او رباب يو څوک راغلا کړي د ادم له خوږې غېږې
او يا لاړه ترې درخو شي، منډه وکړي
يا دنيا خوږه کيسه لا ختمه نه وي
چې يې ژبه ورګونګې شي
هر څه پاتې شي نيمګړي
يا يو خوار د بوډۍ زوی وي
يو مين وي
يوه ناوې يې په مينه وي راوړې
لا يې لاس نه وي وروړی

چې له خوب څخه راویښ شي
رنگه بنگه یې دنیا شي د خیالونو
دا شپېبه داسې شپېبه ده
د گونگي رباب نغمه ده
د بوډۍ شپېې اسره ده
چې پرته وي څنکدن ته
یوه رنگه شان لحظه ده
چې خبره په کې نه شته
خو له ورایه
د یو لاس یو اشاره ده
خدایه خیر کړې!
خدایه خیر کړې!

۲۵/۵/۱۳۶۸

# د محمد اسمعیل یون لنډه پېژندنه



محمد اسمعیل یون د حاجي محمد خان زوی پر ۱۳۴۲ل کال، د لغمان ولایت د الینګار ولسوالۍ دنیا ته راغلی او په یوې روښنفکرې کورنۍ کې زېږېدلی دی.

لومړنۍ زده کړې یې د الینګار ولسوالۍ د سلینګار په لومړني ښوونځي کې سرته رسولي دي، تر هغه وروسته کابل ته راغی او په خوشال خان لیسه کې شامل شو. پر ۱۳۶۲ل کال له نوموړې لیسې څخه په دویم نومره بریالی او پر ۱۳۶۷ل کال د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې محصل شو. پر ۱۳۷۰ل کال له نوموړې څانګې څخه اول نومره بریالی او پر همدې کال بېرته د پښتو څانګې د کدر غړی شو. پر ۱۳۸۵ل کال په نوموړې څانګه

کې د ماسترۍ دوره پیل شوه، یون په ډېر ښه او بریالي ډول دا دوره پایته ورسوله.

محمد اسمعیل یون له ۱۳۷۰ل کال څخه بیا تر ننه پورې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي تدریسي غړی او د(پوهندوی) علمي پوړۍ ته رسېدلی دی، پر استادۍ سربېره، استاد یون د ((کابل پوهنتون))، ((هیلې)) او((شمشاد ))مجلو د چلوونکي دنده هم په ښه ډول ترسره کړې ده. په پېښور کې د چاپېدونکې ((معارف)) مجلې کتونکی غړی هم و. همدارنګه دیو شمېر نورو چاپي خپرونو همکار هم پاتې شوی دی.

استاد یون پر ۱۳۸۱ل کال، په جلال اباد کې بېړنۍ لویې جرګې ته د ختیزو ولایتونو د انتخاباتو د دفتر مشر شو، ددې جرګې لپاره تر ټاکنو وروسته د جرګې غړی، بیاد جرګې د غړو له خوا د بېړنۍ لویې جرګې دلومړي منشي په توګه انتخاب شو. استاد یون په دې جرګه کې تر خپل وروستي وسه خپل ملي او تاریخي مسولیت ادا کړ او د هېواد دښمنه عناصرو د توطیو مخه یې ونیوله.

تر دې جرګې وروسته، کله چې د افغانستان د اساسي قانون د تدوین بهیر پیل شو، نو استاد یون بیا ددې بهیر لپاره د ختیزو ولایتونو د دارالانشاد دفتر مشر وټاکل شو. په ختیزو ولایتونو کې د اساسي قانون د لویې جرګې لپاره انتخابات هم د همدې دفتر له

خوا ترسره شول استاد یون د اساسي قانون د تصویب په لویه جرګه کې د نوموړې جرګې د دارالانشا د غړي په توګه خپل فعال رول ادا کړ. ټاکل شوې وه، استاد یون په ختیزو ولایتونو کې د افغانستان د جمهوري ریاست لپاره د عمومي ټاکنو د دفتر مسول شي، خو په کابل کې د لویو جنګسالارانو او ځینو تنظیمي مشرانو له خوا پر حکومت او ملګرو ملتونو د زیات فشار له امله له کاره ګوښه شو.ملګرو ملتونو(UNAMA) استاد یون ته وړاندیز وکړ، چې په کابل کې به تر دې لوړه دنده درو سپارو، خو استاد یون ونه منله او خپلې استادۍ ته یې دوام ورکړ.

درې کاله وروسته یې د ځینو ملګرو په زیات ټینګار او غوښتنه، د جمهوري ریاست د ملي امنیت شورا په دفتر کې د فرهنګي چارو د ریاست دنده ومنله او په کابل پوهنتون کې پر استادۍ سربېره لا تر اوسه دا دنده پر مخ وړي.استاد یون پر **۱۳۸۵**ل کال د افغانستان او پاکستان د امن ګډې جرګې لپاره د افغانستان له خوا د منشي په توګه غوره شو او دا دنده یې هم په ښه ډول ترسره کړه.

استاد یون د خپلو اکلیکوال په توګه په تېرو شلو کلونو کې ګڼ شمېر فرهنګي او ټولنیز خدمتونه ترسره کړي، په ګڼو چاپي، راډیویي او ټلویزیوني مرکو کې یې د و اقعیتونو او حقایقو د څرګندیبان له امله د خلکو په زړونو کې ځای نیولی دی. که څه هم

ډېر خلک د یون لیکنې، مرکې او نظریات خوښوي، خو یو شمېر داسې خلک هم شته، چې د یون سرسختي مخالفین دي. د هغه ملي او ګټورو نظریاتو ته هم غلط رنګ او تعبیر ورکوي، دا ډول اشخاص، چې اکثره یې زورواکي او د سیاسي ډلو ټپلو غړي او مشران دي، د استاد یون نظریات خپلو شخصي او تنظیمي ګټو ته خطر بولي، نو ځکه یې په ټینګه مخالفت کوي. زه ددې شاهد یم، هر کله چې یون کومه لیکنه او مرکه کړې، نو دده پر وړاندې یې مثبت او منفي غبرګونونه دواړه راپارولي دي، منفي غبرګونونه اکثره وخت د هغو اشخاصو او ډلو له خوا وي، چې په تېر کړکېچن سیاسي بهیر کې یې ډېرې نامشروع ګټې ترلاسه کړي او ځانونه یې مطرح کړي دي.

مثبت غبرګونونه اکثره د ولس د مشرانو، روښنفکرانو او نورو مخورو له خوا وي، خو استاد یون په دغسې سختو اغزنو او تنګو شرایطو کې بیا هم خپل فرهنګي، سیاسي او ټولنیز کار ته دوام ورکوي.

دا اوسنی فرهنګي کار، چې تاسو یې اوس په مسلسل ډول ګورئ، دا د تېرو شلو کلونو کارونه دي، چې له تېر یو نیم کال راهیسې پرې په منظم ډول کار شوی، اوډل شوي او دادی ستاسو مخې ته اینښودل کېږي، په داسې یو دولتي دفتر کې چې بوختیاوې په کې

ډېري وي، د منظم او ستر فرهنګي کار سرته رسول اسانه کار نه دی.استاد يون پر خپلو فرهنګي کارونو سربېره د ګڼو فرهنګي ټولنو د غړي، همکار او موسس غړي په توګه هم خپل فرهنګي رول ادا کړی، په پېښور کې يې د دوو المان مېشتو فرهنګي ټولنو (دافغانستان دکلتوري ودې ټولنې) او(د پښتني فرهنګ د ودې پراختيا ټولنې) د همکار په توګه د بېلابېلو ليکوالو په لسګونو اثار، ايډيټ او چاپ کړي دي. دغه راز يې په سلګونو کورنيو مشاعرو، ادبي غونډو او سيمينارونو کې ونډه اخيستې ده، خپله يې هم په لسګونو مشاعرې، سيمينارونه او علمي ورکشاپونه جوړ کړي دي.

سربېره پر دې، په يو زيات شمېر، ملي او نړيوالو کنفرانسونو کې يې په ښه ډول د خپل هېواد استازي کړې ده. دلته به يې د اثارو يادونه وکړو:

## اثار

### الف- پنځونې:

| کتاب نوم | ځرنګوالی | چاپکال |
|---|---|---|
| • مټکور | لومړی شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • په اورونو کې سندرې | دويمه شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |

### ب- راټولونې:

- هیلې ګډه شعري ټولګه دویم ۱۳۸۷
- نیمګړي ارمانونه د حیران شعري ټولګه دویم ۱۳۸۷
- د لوونو فصل ګډه شعري ټولګه دویم ۱۳۸۷
- د نازو انا یاد د سیمینار د لیکنو ټولګه دویم ۱۳۸۷
- د استاد الفت نثري کلیات د استاد الفت نثرونه دریم ۱۳۸۷
- سیندونه هم مري د اسحق ننګیال شعري منتخبات دویم ۱۳۸۷

## ج- ژباړنې:

- د ټولنپوهنې له نظره: په افغانستان کې د واک جوړښتونه
  د پوهنوال روستارتره کي اثر دویم ۱۳۸۷
- .د افغانستان فرهنګي میراثونو ته یوه کتنه
  د نینسي دوپرې اثر دویم ۱۳۸۷
- په افغانستان کې د جګړې جنایتکارانو محاکمه
  د پوهنوال روستار تره کی اثر دویم ۱۳۸۷

## د- یونلیکنې:

- د اماراتو سفر د اماراتو یونلیک دویم ۱۳۸۷
- که یون دی یون دی د اروپا یونلیک لومړی ۱۳۸۷
- د پنټاګون ترڅنډو د امریکا یونلیک لومړی ۱۳۸۷

## هـ- څېړنې او شننې:

- د محمد ګل خان مومند اند و ژوند ته یوه لنډه کتنه دویم ۱۳۸۷
- استاد زیار د پښتني فرهنګ یو ځلاند ستوری دویم ۱۳۸۷
- د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي پښتو کتابښود دویم ۱۳۸۷
- د افغانستان فرهنګ ته اوښتي زیانونه دویم ۱۳۸۷
- د پښتو شعر هندسي جوړښت شپږم ۱۳۸۷

- له افغانستانه د مسلکي کادرونو د فرار عوامل دويم ۱۳۸۷
- ساينسي پرمختياوې دويم ۱۳۸۷
- ببرنۍ لويه جرګه ولسواکي او زورواکي دويم ۱۳۸۷
- انديال خوشال لومړی ۱۳۸۷
- هيله د خپلو سريزو په لمن کې لومړی ۱۳۸۷
- کلتوري يون لومړی ۱۳۸۷
- فرهنګي فقر لومړی ۱۳۸۷
- مرکه او مرکې لومړی ۱۳۸۷
- خوشال په خپل ايډيال لومړی ۱۳۸۷
- د کتابونو په وړمو کې لومړی ۱۳۸۷
- افغانستان په سياسي کړلېچ کې لومړی ۱۳۸۷
- پښتو ليکنی سمون لومړی ۱۳۸۷
- او سنۍ رسنۍ لومړی ۱۳۸۷
- که نړيوال ماته وخوري؟ لومړی ۱۳۸۷

خدای (ج) دې استاد يون ته ډېر عمر ورکړي او جرئت دې ورته هم تاند لري، الله(ج) دې دی له هر ډول بدو بلاوو وژغوري، په فرهنګي کارو زيار کې ورته د نور زغم او وسېلې هيله لرم.

په درناوي
وفاالرحمن وفا
کابل - افغانستان

# DəLawuno Fasəl

## (The season of Reaping)

***The collection of Pashto Poems***

Collected
By:
M. Ismael yoon


ISBN 978-9936-500-02-0
9 789936 500020 >

د خپرونو لړ: (۳)